ورځپاڼه
# هیواد

مؤسس: عبدالرووف بېنوا
د تاسیس کال ۱۳۲۸ لمریز
**شنبه د رمضان المبارک ۲۲مه ۱۴۴٦ق کال،** د وري ۲ یمه ۱۴۰۴ ل کال،د مارچ ۲۲مه ۲۰۲۵م کال، خصوصي ګڼه لومړی ، پرله پسې ګڼه۶۶۴مه، اتمه دوره

امارت اسلامی افغانستان
وزارت ارشاد، حج و اوقاف
اوقات افطار و سحری ولایت کابل

| رمضان | ۲۲ |
|---|---|
| ایام | شنبه |
| تاریخ | ۱۴۰۴/۱/۲ |
| افطار | ۶:۱۰ |
| عشاء | ۷:۳۲ |
| ختم سحری | ۴:۲۴ |
| آذان فجر | ۴:۲۹ |

## استقبال مردم از فرمان جدید رهبر امارت اسلامی

رهبر امارت اسلامی،عالیقدر امیرالمؤمنین (حفظه الله) فرمان جدید پنج ماده‌یی برای جلوگیری از رسم و رواج‌های ناپسند، در مراسمی مانند نامزدی، عروسی، فاتحه و بازگشت از سفر حج و عمره صادر کرده است. از سوی دیگر، باشنده گان کشور از این فرمان استقبال کرده و می گویند که بسیاری از جوانان وضعیت اقتصادی مناسبی ندارند و توان پرداخت هزینه های بلند عروسی، مراسم ناپسند و تشریفاتی و مصارف گزاف ازدواج را ندارند. شماری از شهروندان از فرمان جدید رهبر امارت اسلامی مبنی بر جلوگیری از ازدواج های اجباری و مصارف گزاف در مراسم مختلف استقبال کرده و از مسئولین امارت اسلامی می‌خواهند که در این مورد آگاهی دهی صورت گیرد تا این رسم ورواج های ناپسند از بین برود. میلاد یکتن از باشنده گان شهر ص۳

د اسلامي امارت د ویاند مرستیال حمدالله فطرت:

## تېر کال په سیاسي او اقتصادي برخو کې له لاسته راوړنو ډک و



اسلامي امارت وایي: تېر کال یې په بېلابېلو سیاسي او اقتصادي برخو کې مهمې لاسته راوړنې لرلې دي. د اسلامي امارت د ویاند مرستیال حمدالله فطرت وایي: اسلامي امارت په تېر ۱۴۰۳ کال کې په سیاسي او ډیپلوماتیکو برخو کې له لسو څخه د زیاتو ډیپلوماټانو په لېږلو بریالي شوي دي.نوموړي زیاتوي، سږ کال د اسلامي امارت دربوو سفیرانو هم د چین، ازبېکستان او متحدو عربي اماراتو مشرانو او جمهور رئیسانو ته خپل باورلیکونه وړاندې کړل او په دغو هېوادونو کې یې د اسلامي امارت د سفارتونو رهبري په غاړه واخیسته. ((۱۴۰۳ لمریز کال د اسلامي امارت لپاره له مهمو لاسته راوړنو ډک کال و. د بهرنیو چارو وزارت د هڅو په پایله کې سږ کال موږ وکولای شول چې د چین، روسیې، متحده عربي اماراتو، قطر، ۳مخ

د ریاست الوزراء اداري مرستیال:

## د اسلامي امارت مشرتابه د پوهنې وزارت د ټولو اړتیاوو پوره کولو ته ژمن دی

په هېواد کې نوي (۱۴۰۴) ښوونیز کال ورمه ورځ په پلازمېنه کابل کې د اماني لېسې د غونډو په تالار کې د یو شمېر شو. د ریاست الوزراء اداري مرستیال مولوي عبدالسلام حنفي په دغې غونډه کې وویل، چې د پوهنې وزارت مسئولین




حکومتي چارواکو، ښوونکو او زده کوونکو په شتون کې د یوې غونډې په ترڅ کې پیل باید د داسې معارف جوړولو هڅه وکړي، چې د هېواد ننیو اړتیاوو او غوښتنو ۳مخ

مولوي امیر خان متقي :

## اسلامي امارت د متوازن بهرني سیاست په رڼا کې له ټولو لوریو سره مثبتې اړیکې غواړي

د اسلامي امارت د بهرنیو چارو وزارت سرپرست مولوي امیر خان متقي ورمه ورځ د بندیانو په چارو کې د امریکا د متحدو ایالتونو د ولسمشر له ځانګړي استازي اډم بوایلر او د افغانستان لپاره د دغه هېواد له پخواني ځانګړي استازي زلمي خلیلزاد او مل پلاوي سره وکتل.
یاد وزارت په یوه خبرپاڼه کې ویلي، چې په دې کتنه کې د افغانستان او امریکا پر دوه اړخیزو اړیکو، د بندیانو په خلاصون او په امریکا کې افغانانو ته د کونسلي خدمتونو د وړاندې کولو په اړه خبرې شوې دي .د بهرنیو چارو وزارت ښاغلي متقي څرګنده کړې، چې اسلامي امارت د خپل متوازن



سرپرست کابل ته د یاد پلاوي راتګ په دوه اړخیزو اړیکو کې ښه پرمختګ بللی دی. بهرني سیاست په رڼا کې له ټولو لوریو سره مثبتې اړیکې غواړي. ده زیاته کړې: ۳مخ

د اقتصاد وزارت:

## په تېر ۱۴۰۳ کال کې د افغانستان اقتصاد ۲،۷سلنه وده درلوده

د ۱۴۰۳هجري لمریز کال له پای ته رسېدو سره هممهاله د اقتصاد وزارت چارواکي وايي، چې دغه کال کې د افغانستان اقتصاد د پام وړ وده کړې ده. دوی ۲.۷ سلنه اقتصادي وده، د خوراکي او لومړنیو توکو په بیو کې ۲۸ سلنه کموالي، له کورني بودیجې څخه د ۳۷۰ لویو پروژو او د ۸۷۳ فرعي پروژو بشپړېدل، له ګاونډیو او د سیمې هېوادونو سره د سوداګرۍ زیاتوالی، د بېلابېلو هېوادونو د پانګونې راجلبول او افغان خاوره کې د



ټاپي پروژې پراختیا په تېر ۱۴۰۳ کال کې د افغانستان د اقتصادي پرمختګ د بېلګې په توګه یاد کړي دي.د اقتصاد وزارت ویاند عبدالرحمن حبیب رسنیو ته ویلي: په تېر ۱۴۰۳ کال کې د افغانستان اقتصادي وضعیت د ۱۴۰۲ کال په پرتله ۳مخ

## ایران ۲۱۱ تنه افغان بندیان اسلامي امارت ته وسپارل

ایران، د نیمروز ولایت د ورېښمو پله له لارې ۲۱۱ تنه افغان بندیان چې د بېلابېلو جرمونو په تور په یاد هېواد کې نیول شوي وو، د ورېښمو پله له لارې اسلامي امارت ته وسپارل.په دې تړاو جوړو شویو مراسمو کې د زندانونو چارو د سمون اداري عمومي رئیس، مولوي محمد یوسف مستري ویلي، ۴۸۴ تنه افغان بندیان چې ایران کې د بېلابېلو جرمونو په تور نیول شوي وو، اسلامي امارت ته سپارل کېږي، چې له ډلې یې ورمه ورځ ۲۱۱ تنه ازاد او هر یو به خپلو ولایتونو ته انتقال او د حبس ټاکلې موده به هلته ۳مخ

## د ټولګټو چارو وزارت استازي د «سولې او باور» نړیوال کنفرانس کې ګډون وکړ

د ټولګټو وزارت وایي: د دې وزارت په استازیتوب د هرات د ټولګټو رئیس ملا محمد ادریس، د ترکمنستان په پلازمېنه عشق آباد کې د (سولې او باور) تر عنوان لاندې په نړیوال کنفرانس کې ګډون وکړ. د هرات د ټولګټو رئیس ملا محمد ادریس، په دې کنفرانس کې د وینا پرمهال ریل پټلۍ په نړۍ کې یوه له مهمو ترانسپورتي زیربناوو څخه وګڼله، چې په سیمه ییزه او نړیواله اقتصادي پراختیا،



سوداګرۍ او نړیوالو اړیکو کې مهم رول لوبوي. نوموړي وویل: د افغانستان د اسلامي امارت رهبري او د ټولګټو وزارت تل هڅه کوي، چې په افغانستان کې د ریل پټلۍ ۳مخ

مولوي عبدالکبیر:

## د نظام د پیاوړتیا او یووالي برخو کې د اهل تشیع مشرانو له هڅو ملاتړ کوو

د کډوالو او راستنېدونکو چارو وزارت سرپرست مولوي عبدالکبیر د کور او ښار جوړولو وزارت له مرستیال مدار علي کریمي بامیاني او د اهل تشیع هېوادوالو له مشرانو او دیني عالمانو سره کتلي دي.
یاد وزارت د یوې خبرپاڼې په خپرولو سره ویلي، چې په دې کتنه کې د اهل تشیع مشرانو د اسلامي امارت له همکاریو یادونه وکړه او زیاته یې کړه، چې د حکومت له لوري پر وخت د ولس غږ اورېدل شوي او د امکان تر بریده یې ستونزې حل شوي دي. د سرچینې د معلوماتو له مخې دغو مخورو او ځینو برخو کې یې د اسلامي امارت د همکارۍ غوښتونکي



دیني عالمانو د یو لړ موضوعاتو اړوند خپلې سلا مشورې او نظرونه له سرپرست وزیر سره شریک کړل او همدارنګه په شول. په ورته وخت کې مولوي عبدالکبیر یادو قومي مشرانو او دیني عالمانو ته ویلي، چې اسلامي ۳مخ

## قطر پکتیا کې د لسګونو سرپناوو د جوړولو چارې پیلوي

د کډوالو او بېرته راستنېدونکو چارو وزارت وايي، چې د قطر د سرې میاشتې ټولنه به ډېر ژر پکتیا کې بېځایه شویو، راستنو شویو او اړمنو کورنیو ته د لسګونو سرپناوو د جوړولو چارې پیل کړي.
د یاد وزارت د خبرپاڼې له مخې، د دې وزارت د پلان او پالیسۍ رئیس محمودالحق احدي او د قطر د سرې میاشتې عملیاتي غړي په یوه تخنیکي ناسته کې په دې هکله خبرې کړې دي.

## بامیانو کې تېرکال ۱۲ قومي شخړې حل شوې



د بامیانو ځایي چارواکي وایي، چې په تېر ۱۴۰۳ کال کې یې ۱۲قومي شخړې حل کړې دي. د بامیانو د والي ویاند صبور فرزان سیغاني وایي، چې د تېر ۱۴۰۳ کال په لړ کې د دیني عالمانو او قومي مشرانو په منځګړیتوب ۱۲ قومي شخړې حل شوې دي.ده زیاته کړې ،چې سیمه ییزه اداره هڅې کوي، تر څو د خلکو ترمنځ شخړې حل کړي او په ارامه فضا کې ژوند وکړي. ۳مخ

## فراه کې لسګونه پراختیایي پروژې پلې شوې



د فراه د اقتصاد ریاست مسئولین وایي،چې په دې ولایت کې د ۳۰.۹۵ میلیونو ډالرو په لګښت ۶۶بېلابېلې پراختیایي پروژې پلې شوې دي. د یاد ریاست رئیس مولوي جمال‌الدین جلالي د ولایتي پراختیایي کمېټې په غونډه کې، چې د فراه والي مولوي غوث‌الدین رهبر، د ولایت د دفتر رئیس رحمت‌الله غورځنګ، د کارکوونکو چارو رئیس قاري عجب ګل نورالهادي او د سیمې د ادارو ګڼو رئیسانو په‌کې ګډون درلود وویل، چې د روان کال په اوږدو کې ۳۸ داخلي او ۱۰ بهرنۍ غیر دولتي موسسې د اقتصاد ریاست سره ثبت شوې دي. نوموړي وویل، چې د دغو موسسو په مالي ملاتړ، د روغتیا، پوهنې، کرنې، دکلیو بیارغونې، ۳مخ

# د نــاوړو دودونو د مخنـیوي په هـکله د عالیقدر امیرالمؤمنین (حفظه الله تعالی) فرمان

الحمدللـه ربِّ العٰلمین والصَّلٰوةِ والسَّلام علٰی سیِّد المُرسلین و علٰی آله و أصحابه أجمعین.

د الله تعالـی دیـن چـې خاتم النبیین حضرت محمد صلی الله علیه وسلم انسانانو ته رسولی او بیان کــړی دی، د دنیا او آخرت هر ډول نېکمرغي، ښــېرازي او خوښي په کې نغښتي ده، چې په عملي کولو سره یې یقیناً د انسانانو ټولې ســتونزې حل او د ژوند په هره مرحله کې یې له بې ســارو اسانتیاوو څخه برخمن وي، الله تعالــی ته خپل دین خوښ دی او خپلو بندګانو ته یې د مهربانۍ له مخې د فکر، تدبر او عملي کولو بلنه ورکړې ده او د ژوند په ټولو ساحو کې د دین عملي کولو لپاره یې حضرت محمد صلی الله علیه وســلم نمونه ګرځولــی دی او د هر هغه څه چــې نبي صلی الله علیه وسلم امت ته وړاندي کړي دي د عملي کولــو او له هر هغه څه څخه چــې منع کړې یې دي د ځان ساتلو حکم یې کړی دی. لکه څنګه چــې الله جل جلاله په لاندې آیتونو کې فرمایلي دي:

ژباړه: خامخا په تحقیق سره دی تاســو لره په (کار ) n رسول الله کې اقتــداء غوره نېکــه (کابلی تفسیر) (الأحزاب: ۲۱)

همدا راز الله جل جلاله فرمایلي دي: ژبــاړه: او هغــه څــه چې درکړي تاسي ته رســول (د الله)، نو واخلئ هغه؛ او هغه څه چې منع کوي (رســول الله) تاسي له هغه څخه، نو بېرته شئ (مه یې غواړئ) (کابلی تفسیر) الحشر، آیت: ۷).

بلــه دا؛ هر هغه څه چې په دین کې نهوي، رســول الله صلی الله علیه وســلم هغه مردود او باطل ګرځــولي. لکه څنګــه چې له حضرت عایشــې رضي الله تعالی عنها څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: ژباړه: چا چې داسې یو عمل وکړ، چې زموږ پــه دین کې نه وي، هغه مردود او باطل دی.

له حــضرت شــعبي رحمه الله تعالــی څخــه روایــت دی چې حــضرت عمــر بــن الخطــاب رضي الله تعالــی عنــه وفرمایل: یاأیهاالنــاس رُدُّوا الجهالاتِ إلی السنة( ).

ژباړه: ای خلکــو! جاهلانه (د ســنتو خلاف) طریقې سنتو ته واړوئ (د ســمون کوشــش یې وکړئ).

پورته آیتونو، حدیث شریف او مبارک اثر ته په کتو، اســلامي امــارت غواړي چــې د ژوند په ټولو ســاحو کې د سنتو خلاف طریقې ســنتو ته واړوي، بناءً دا چــې؛ نکاح (واده کول) ســنت ده؛ خو متأســفانه زموږ په ټولنه کې له دغه شرعي او مسنون عمل سره ناســم او تاواني رواجونه تر دې حــده ګډ شــوي چې خلک یې نه یــوازې په دنیوي لحاظ له ملا ماتوونکو مالي زیانونو سره مخ کړي؛ بلکــې په دیني لحاظ هم ډېــر منکرات پکــې ترسره کیږي چې د څو مواردو یې دلته د اصلاح او مخنیــوي په موخه یادونه کیږي:

پــه مهرونو کــې زیاتوالی غوره کار نهدی:

شریعت، په ودونو کې د اسانتیا او لــه درنو مصارفو څخه د ډډې کولو ترغیب ورکوي.

له حــضرت عایشــې رضي الله تعالی عنها څخه روایت دی چې، رســول الله صلي الله علیه وسلم فرمایــلي دي: ژباړه: پــه تحقیق سره، ډېــره برکتي نکاح هغه ده چې لګښت یې لږ وي.

پــه یو بــل حدیــث شریف کې راغلي: ژبــاړه: په مهر کې له یو بل سره اسانی کوئ (یعنې لږ مهر ټاکئ) ځکه کله نارینه، ښــځې ته دومــره مهر ورکــړي چې له امله یې له هغې ښځې سره په زړه کې کینه (نفرت) پیدا شي.

حــضرت عمــر رضي الله عنــه فرمایــلي دي: ژباړه: خــبردار! د ښــځو مهرونه ډېــر مهزیاتوئ؛ ځکه که د مهر زیاتوالی دنیوي عزت او یا د الله عزوجل په نزد تقوی وای، نو نبي صلی الله علیه وسلم یې تر تاسې زیات مستحق و.

له یــادو او ځینو نــورو مبارکو حدیثونو څخه په استدلال سره، فقهــاء کرامو رحمة الله تعالی علیهم په مهر کې تخفیف مسنون او مرغوب بللی دی.( )

مهر، د منکوحې ښځې حق دی او بل هېچا ته یې خوړل صحیح نهدي.

مهــر، د ښــځې حــق دی، بــل هېڅــوک حــق نهلــري چې د هغې له خوښې پرته یې مصرف کړي، تــر دې چې فقهاء رحمهم الله تعالــی وایي: کــوم پلرونه او نیکونه چې د لونو یا لمســیو مهرونه خــوري، هغوی غاصب او د مهر ضامن دي؛ نو چې پلار او نیکه د مهر په خوړلو غاصب ګڼل کېــږي، ورور، تره او نورو خپلوانو ته خــو بېخي هېڅ لاره نشته، چې د خویندو، وریرونو او یــا د نــورو خپلوانــو نجونو مهرونه وخوري یا یې د هغوی له خوښې پرته مصرف کړي.

پلرونه او خپلــوان که د مهر له خوړلو راوګرځول شي، مهرونه خپلــه را کمېږي؛ ځکه نن ســبا ډېرې پیســې هغه دي چې د مهر په نوم اخیســتل کېږي، خو پلار یا نور خپلوان یې خوري او ښځو ته د مهر په نوم ډېرې کمې پیسې ورکوي.

بناءً هغه څــو رواجونه چې پر شرعي منعــې او اسراف سربېره په لوړه کچه د اقتصادي ستونزو او د اجتماعي او اخلاقي ناخوالو سبب ګرځېدلي دي، د افغانستان د اســلامي امــارت د مرکــزي دارالافتاء اړوند د فقهي مجالسو د علــماء کرامــو، د افغانســتان د معتــبرو شــیوخو عظامــو، د اقتصــادي کمېســیون د محترمو غــړو او د اړونــدو وزارتونو او امارتي ادارو د ګډ ګمارل شــوي هیئت د استازو له لوري تشخیص شــول، چې په هکلــه یې لاندې مراتب منظوروم:

د واده پــه اړونــدو امورو کې د رعایت وړ ټکي

لومړۍ ماده:

**(۱)** د بالغې نجلۍ ولي چې اکثره اوقاتو کــې د هغې پلار یا ورور وي، شرعــاً مکلــف دی، چې د هغــې د شرعي حقوقــو رعایت وکړي.

**(۲)** د بالغــې نجلــۍ ولي شرعــاً مســئولیت لري، چې د هغې په کــوزده کولــو کې لــه ور سره مشــوره وکړي او د هغې مثبت نظر واخلي.

**(۳)** د بالغــې نجلــۍ ولي، شرعاً نهــشي کــولای چــې د هغې له خوښــې پرته په اجبــار سره یې چاته په نکاح ورکړي.

(۴) که د بالغــې نجلۍ ولي، یاده نجلــۍ د هغې له خوښــې پرته په اجبــار سره چاته پــه نکاح ورکړه، هغه کولای شي محاکمو او اړوندو ادارو ته شــکایت او عریضه وکړي، پــه دې صورت کې د عالیقدر امیر المؤمنین حفظه الله تعالی د (۱۴۴۳/۴/۲۷هـ ق) نېټــې د (۸۳ج۱) ګڼه د ښــځو د حقونو فرمــان رعایت ضروري دی.

(۵) ښــځه، د اســلام لــه نظره د نــکاح کولو پــه موضوع کې د نارینه په څېــر خپلواکه ده، په هېڅ صورت د چا مال نهګرځي او د خپــل خاوند له مړینې او یا طلاق وروســته د دې له خوښې او مشورې پرته یې خسرګنۍ او یا هــم پلارګنۍ په زور بل چاته په نکاح نهشي ورکولای، پهځپله خوښــه چېرته او چــا سره چې وغواړي، لــه شرعي اصولو سره سم نکاح کولای شي.

(۶) کوم مهــر چې په نکاح کې ښــځې ته ورکول کیږي، هغه د ښځې حق دی او څوک یې نهشي ترې اخیســتلی، پــه دې هکله د عالیقــدر امیرالمؤمنین حفظهاالله تعالی د (۱۴۴۳/۴/۲۷هـ ق) نېټې د (۸۳ج۱) ګڼه د ښځو د حقونو فرمان رعایت ضروري دی.

(۷) که څوک په کومه نجلۍ یا ښځه ډزې وکړي یا یې پیکی پرې کړي او یا څــادر پرې واچوي، په دې او یا پــه بلې طریقې سره په جبري توګه هغه خپله ښــځه وګڼي، دا غیرشرعي عمل او جرم دی، داسې اشخاص دې د اسلامي امــارت محاکمو تــه ور معرفي کړای شي، ترڅو د خپل جرم په سزا ورسېږي.( )

**(۸)** هغه کوزده چې د شــاهدانو په مخ کې عقد (ایجاب او قبول) پکې نهوي شــوی، شرعاً نکاح نهبلل کېږي.

**(۹)** پــه اســلامي شریعت کې د مهــر کمه اندازه لــس درهمه او زیاته اندازه یــې حد نهلري، که مېرمن راضي وي، په لس درهمه یا د هغې په معادل مال هم نکاح کېږي، که د هغې خوښه نهوي، بیا له زړه ســواندي او خیرخواه پــلار یا نیکه پرته نــور خپلوان او یا بــد اختیاره پــلار او نیکه نهشي کولای چې له مهر مثل په کمه انــدازه د هغې نکاح وتړي او که یــې له مهر مثــل په کمه اندازه د هغې نــکاح تړلې وي، داسې نکاح صحیح نهده؛ مهر د مېرمنــې حق دی، خپلوان د ځان لپاره یوه پیســه هم نهغوښتلی او نهاخیستلی شي.( )

**(۱۰)** اســلامي شریعــت د مهر د کموالي ترغیب کړی دی؛ خلک دې هڅه وکړي چې د زیات مهر اخیســتلو رواج ختــم او په کم مهر دې اکتفاء وکړي.

**(۱۱)** له مهر څخه علاوه د ولور، خــوړې، بابېــړې، طویانــې او خوښې په نامه د خسرګنۍ لهخوا او یــا د نورو رواجونــو په نوم پیسې اخیستل جائز نهدي، فقهاء کــرام رحمهم الله یې رشــوت ګڼي.( )

**(۱۲)** له کوزدې وروســته د پښه خــلاصي یا پښــه ارتي او شریني خوري (غټ دســتمال) او یا په نورو نومونو سره میلمســتیاوې جوړول، بېځایــه رواجونه دي، ډډه دې ورڅخــه وشي، د دوه ځله دستمال وړلو (غټ دستمال) اجازه نشته او په یو ځل دستمال (وړوکی دســتمال) کې به هم د نارینه او ښځینه میلمنو تعداد په کمه اندازه وي او په دې مراسمو کې له زوم او ناوې پرته بل چاته تحفې ورکول منع دي؛ البته زوم او ناوې ته تحایف به هم د وسې مطابــق یوازې جامــې او نور د ډول او سینګار عادي شیان وي؛ موټر، موټرسایکل، کور (سرای) او داسې نور قیمتي شــیان به په تحفه کې نهورکول کیږي.

(۱۳) د دستمال مراسم به په هوټل کې نهوي؛ ځکه دا اسراف دی او الله تعالی فرمایــلي دي: ﴿یَا بَنِي آدَمَ خُذُوا زِینَتَکُمْ عِنْدَ کُلِّ مَسْجِدٍ وَکُلُــوا وَاشْرَبُــوا وَلَا تُسْرِفُوا إِنَّهُ لَا یُحِــبُّ الْمُسْرِفِینَ﴾ (الاعراف: آیت ۳۱).

ژباړه: ای زامنــو د آدمه! واخلئ تاســې زینت (ښایست) خپل په نزد (د وخــت) د هر لمانځه (په اغوســتلو د پاکو کالیو(جامو) د عورت ستر) او خورئ او څښئ او اسراف (بــې ځایه خرڅ) مه کوئ تاسې بې شکه، چې الله نه خوښوي مسرفان (بې ځایه خرڅ کوونکي). (کابلی تفسیر)

(۱۴) له کوزدې او نکاح وروسته دې هڅه وشي چــې د امکان په صورت کــې هر څومره چې ژر وي، واده وشي.

(۱۵) له کوزدې وروسته رواجي او تکــراري پوښــونه (جوړې) منــع دي، پــه کال کــې یو ځل د زوم لهخــوا یــوازې نــاوې ته لــه اسراف پرته د وســې مطابق د پوښ (جــوړې) وړلــو اجازه شته، د ناوې لهخوا زوم ته پوښ (جوړې) وړل مطلقاً منع دي.

(۱۶) د ولیمې او واده مراســم به لــه اسراف او ریاء پرته د زوم د وســې مطابق د هغه د خوښې په ځای او موټرو کې ترسره کیږي، خسرګنۍ یې نهشي مجبورولای چې په هوټل، یــا قیمتي موټرو کې د واده مراسم ترسره کړي.

(۱۷) زوم بــه د واده مراســم په امارتي موټرو کې نه ترسره کوي.

(۱۸) د واده پــر وخــت د زوم لهخــوا دې د نــاوې کورنــۍ ته خوړې یــا طوی (پاخــه یا خام خــوراک) نــه وروړل کیــږي، همدارنګــه د بولې(شــیریني خــورۍ) او جــوړې د مصارفو اخیستل او غوښــتل هم منع دي او همداراز له زوم څخه د دودې او ټکــرې په نــوم او یا په نورو نومونو رختونه غوښتل منع دي او د شریعت لهمخې د یادو شیانو اخیستل ناجائز کار دی.( )

(۱۹) د نــاوې وړلــو پر وخت د ناوې د مامــا، د ناوې د همزولو، د کلیوالــو او یا بــل خدمتګار لهخوا او یا د دوی لپاره د زوم له کورنۍ څخه پیســې غوښتل منع دي، البتــه کــه د کلي خدمتګار ته چې همېشه په ښــادیو کې د کلیوالو خدمت کــوي په خپله خوښــه څوک د صدقې په نوم پیسې ورکوي، باک نهلري.( )

(۲۰) پــه ودونو کې د لوبو داسې مســابقې جوړول چې ګټونکي ته د موټــر، موټرســایکل یا بل شي انعام ورکول کیږي منع دي، ترڅــو د بېځایــه اسراف مخــه ونیول شي، البتــه د جائزو لوبو مســابقې چې انعام پکې نهوي، جوړېدای شي.

(۲۱) د کوزدې، دســتمال یا واده د مراســمو پرمهال ډزې (ټکان) کول او له امارتي وسایطو څخه استفاده کول منع دي؛ همدارنګه په ورته مراســمو کــې د موټرو او موټرسایکلونو ځغلول، لویې وراوې تیــارول او یــا داسې نور کارونه چــې د لارې د بندېدو یا د تلفاتــو او یــا د خلکو د اذیت سبب کیږي، منع دي.

(۲۲) پــه واده کــې یا لــه هغه وروسته ناوې ته د نورو کورونو د نارینهوو او ښــځینهوو لهخوا برخه (جامې/پیسې) ورکول او بیا د ناوې لهخــوا په عوض کې برخه ورکــول منع دي؛ ځکه له دې نــاوړه رواج څخه یو دروند تکلیف رامنځته شــوی او بده لا دا چــې د هر څه عوض به بېرته ورکــوي چې د محبــت پرځای نفرت پیدا کوي.

(۲۳) د دستمال په مراسمو کې به د زوم له کــور پرته نور مېلمانه ناوې ته د پیســو ډالۍ نهورکوي او نه به د نــاوې کورنۍ مېلمنو ته جامې او نورې ډالۍ ورکوي، البتــه له اسراف او ریــاء پرته د مېلمنو اکرام پروا نهکوي.

(۲۴) بدل/موخۍ ښــه عواقب نهلري حتی الامکان دې ترې ډډه وشي، د بدل/موخــۍ په صورت کــې د مهــر تــاکل او ورکــول ضروري دي، علــماء کرام دې د بدل/موخۍ د کراهیت په هکله خلکو ته پوهاوی ورکړي.

د مړي په مراســمو کې د رعایت وړ ټکي

دوهمه ماده:

(۱) په ځینو ســیمو کې د مړي د کورنۍ له لوري کلیوالو او نورو خلکــو ته په معینــو ورځو کې طعام او مېلمستیا برابرېږي، چې فقهاء کرامو تــرې منع کړې ده، پــه دې هکله د فقهاء کرامو څو اقوال په لاندې ډول دي:

- د مړینــې په مناســبت د مړي د کورنــۍ لــه لــوري خلکو ته مېلمســتیا برابرول مکروه دي؛ ځکه مېلمستیا په خوشحالیو کې وي، نه په غمونو کې، دا ډېر بد بدعــت دی (چې د غــم په ورځ خلکو ته مېلمستیا تیاروي، ځکه چې شریعــت کې دا اصل نهلري او بل دا چــې د دغو ورځو خپل خپل ترتیبونه او مکلفیتونه دي). ( )

- د مړینــې په مناســبت راټولو شویو خلکو ته د مړي د کورنۍ له لوري د خوراکونو چمتو کول ګناه ده؛ جریر بن عبدالله رضی الله عنه وایي: د مړي په کور کې د هغه د خپلوانــو راجمع کیدل او د هغوی لــه لوري د خوراک ترتیبــول موږ لــه نیاحت څخه ګڼو؛( ) یعنــې لکه ویر (چیغې او فریاد) مــو چې ممنوع او بد ګڼل، دا مــو هم بد ګڼل (حال دا چې نیاحت او وېــر کبیره ګناه ده).( )

- د مړي د کورنۍ لهخوا خلکو ته خوراک برابرول مکروه دي، ځکه چې له دې سره یې مصیبت زیاتېږي او بل دا چې د جاهلیت د زماني له خلکو سره مشــابهت راځي.( )

- رواجــي خیراتونــه د ځــان مشــهورولو او ریاء لپاره دي، د الله تعالی لپاره یې نهکوي له دې امله باید ډډه ترې وشي.( )

- رواجي خیرات کــه مباح هم شي لــه دې املــه چــې خلکو د واجبــوالي مرتبــې ته رسولي، مکــروه او ترک یــې ضروري دی.( )

پورته ذکر شویو ــــــــ۳مخ




## اسلامي امت؛ د کمزورۍ په اوج کې!

په وروستیو کلونو کې د اسلامي امت حالت د ژورې اندېښنې وړ ګرځېدلی دی. بې‌اتفاقــي، داخلي جګړې، د کفري نړۍ لهخوا اشــغالونه، اقتصادي کمزورتیــا او د نړیوالو معادلاتو پر وړاندې د اســلامي هېوادونو ضعیف دریځ هغه عوامل دي چې د امت د زوال ســبب شــوي دي. له ټولو ستره او ځوروونکې بېلګه یې د فلســطین قضیه ده، چې د اســلامي امت د بې وسۍ څرګند انعکاس دی.د اسلامي امت د کمزورۍ له ټولو لوی عامل بې اتفاقي ده. اسلامي هېوادونه، چې باید یو بل ته د وروری لاسونه ورکړي، د نړیوالو قدرتونو د لوبو قرباني شوي او یو د بل پر ضد کارول شوي دي. د دې ترڅنګ، په ډېرو اســلامي هېوادونو کــې داخلي اختلافونه، قومي تعصبات او مذهبي درزونه د دې لامل شوي چې د امت یووالی تر پوښتنې لاندې راشي.بله مهمه ستونزه، چې د اسلامي امت د کمزورۍ سبب شوې، د کفري نړۍ لهخوا نیواکونه او د اســلامي هېوادونو کمزوری دریځ دی. د فلســطین د آزادۍ لپاره د اســلامي نړۍ نیمګړی غبرګون یې له ټولو ښه مثال دی. مسلمانان هره ورځ د وحشت تر سیوري لاندې ژوند کوي، خو د امت مشران یوازې له ژبنیو غندنو ورهاخوا اقدام نه کوي. که اســلامي امت غواړي چې خپل عزت، وقار او سیاسي ځواک بېرته ترلاسه کړي، نو باید عملي ګامونه واخلي. له ټولو مهم کار، چې د اســلامي نړۍ د ژغورنې یوازینۍ لاره ده، یووالی او اتفاق دی. هغه وخت چې اســلامي هېوادونه د یوه امت په توګه د خپلمنځي اختلافاتو پر ځای د ســتراتېژیک یووالي فکر وکړي، بیا به د هېڅ ظالم جرئت نه وي چې اسلامي امت ته سپکاوی وکړي.دوهم، اســلامي هېوادونه باید د اقتصادي ځان بسیاینې لپاره هڅې وکړي. اوســنی اقتصادي انحصار، چې اسلامي هېوادونه یې د کفري نړۍ محتاج کړي، باید مات شي. که اســلامي هېوادونه خپلې طبیعي سرچینې په ســمه توګه وکاروي، نو نه به د بل چا مرســتو ته اړتیا ولري او نه به د کفري هېوادونو اقتصادي فشار ته تسلیم شي.درېیم، اسلامي هېوادونه باید خپلو پوځي ځواکونو ته وده ورکړي. د فلسطین قضیې ثابته کړه چې یوازې زباني غندنې کفایت نه کوي؛ د امت د دفاع لپاره باید ځواک موجود وي. که اســلامي هېوادونه د خپلو امنیتي ستونزو د حل لپاره یوازې پر نړیوالو قدرتونو تکیه وکړي، نو دا به د تل لپاره د اســلامي امت د کمزورۍ لامل شي.اســلامي امت اوس د تاریخ په یوه حســاس پړاو کــې دی. یا به د بې اتفاقۍ، داخلي جګړو او بهرني فشــار له امله لا کمزوری شي، یا به بېدار شي، خپلمنځي اختلافونه به له منځه یوسي، اقتصادي او پوځي ځواک به رامنځته کړي او د امت د عزت لپاره به یو موټی شي. که امت همداسې بې حسه او بې وسه پاتې شي، نو د فلسطین مظلومیت به یوازې پیل وي، او دا بې عدالتي به د امــت پر نورو برخو هم خپره شي.له همدې امله، اوس د هر مســلمان، هر عالم او د هر رهبر مسئولیت دی چې د اسلامي امت د یووالي، اقتصادي ځواک او سیاسي ثبات لپاره کار وکړي، تر څو دا امت بېرته خپل له ویاړه ډک مقام ته ورسېږي.

## تقلای مردم غزه و سکوت بی شرمانه جهان

استوار

قرار گزارش رســانه ها از آتش بس میان نیروهای صهیونیستی اسرائیل و فلســطین، نیروهای صهیونیســتی آتــش بــس را شکســتند، بــه اثر بمبــاران و حمله اسرائیل حــدود ۴۰۰ تن فلســطینی به شــهادت رسیده که همه مــردم ملکــی بوده و بیشترینه شــهداء کودکان بوده اند .همچنان بیشــتر از ۴۰۰ تن در ایــن حمله زخمی شــده اند که در این حمله و پلان دیدگاه ترامپ رئیــس جمهور امریکا نیز شریک بوده است. امریکا یکی از حامیان و حمایت کننده گان اصلی صهیونیســت ها در جنگ با فلسطین است .اینکه چــرا جنــگ دوباره توســط اسرائیل شعله ور شد و آتش بس شکست، دو نکته را بر ملا می سازد. اول اینکه غرض از آتش بس اسرائیل آزاد ســازی اسراء اسرائیلــی بــوده و دوم تجدید تجهیــزات نظامــی و امکانات جنگــی اسرائیل، زیــرا یهودی های صهیونیســتی هیچگاه در هیچ موردی به تعهدات خویش پابندی نداشــته و ندارند .آنانی که ســخن و حرف شان حقوق بشری و انســانی است و در هر جا بالای هر کشــور انگشــت انتقاد دراز می کنند، امروز چرا در مقابل این همه مظالم و بیداد خاموش اند، چرا شورای امنیت ســازمان ملل در زمینه مداخله نمی کند، چرا کشور های عربی ناجوانمردانــه خامــوش اند و چرا کشــورهای اسلامی جهان نظاره گر چنیــن قصاوت و بی رحمــی اند.وضعیــت موجود مصداق اینســت که نه شورای امنیتی وجــود دارد و نه حقوق بشری، همه حرف است وخود کامه گی، بر مســلمانان جهان است که در برابر این همه ظلم و اســتکبار خاموش ننشــینند، قتل عام مردم فلســطین توسط اسرائیل با حمایــت امریکا در رأس آن آقــای ترامــپ و ضجه کــودکان معصــوم فلســطینی در ماه مبــارک رمضان بیانگر وحشت و حیوان صفتی ایشان و ننگ بزرگیســت خاموشــی جهانــر به ویــژه کشــورهای اســلامی بایــد هرچــه زود تر صدا بلند کنند وحتا مستقیماً به حمایت از فلسطین بر پا خیزند، زیرا سکوت در برابر این همه مظالم گناه نابخشودنی است.

اگر دشمن قوی است، خداوند ج قویتر از همه است. مسلمانان جهــان! بــا تــوکل به خــدا به حمایت مسلمانان فلسطین بر پا خیزید. ص۳

# افغان اعلانات

**اطلاعیه مفقوی**

یک جلد پاسپورت تجارتی به اسم بریالی فرزند نورمحمد مفقودگردیده از اعتبار ساقط است.۹۹۰۴

**اطلاعیه مفقوی**

یک جلد پاسپورت و تذکره تابعیت کشور ترکیه به اسم غلام عباس فقیری مفقودگردیده از اعتبار ساقط است. ۹۸۹۴

**اطلاعیه فروش موتر**

اسامی محترم محمد فایق فرزند محمد نادر یک عراده موتر پلیت ۲۴۶۱۶ بس کابل نوع بنز بس جرمنی ۴۰۴ خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای مایل فرزند رحمت شاه بفروش رسانیده است.بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۹۰۶

**اطلاعیه مفقودی**

به تعداد دو قطعه کارت مجوز حمل سلاح نوع کلاشینکوف دارای شماره ۱۳۶۶۷۷۶ دوم نوع تنفگچه دارای شماره ۲۲۰۷ مربوط محترم اسد الله فرزند سید رسول مفقود گردیده از اعتبار ساقط میباشند.۹۸۹۳

**اطلاعیه فروش موتر**

اسامی محترم شیر افغان لمتید یک عراده موتر پلیت ۵۳۵۹۵ ش کابل نوع تیوتا کرولا خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای احمد جاوید فرزند پادشاه میر بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند.۹۸۸۴

**اطلاعیه فروش موتر**

اسامی محترم شرکت حکمیار لمتید یک عراده موتر پلیت ۶۸۵۳۹-۲ ش کابل نوع تیوتا کرولا سالون خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای شریف الله فرزند شیر افضل بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۹۰۰

**اطلاعیه تصمیم اعطای قرارداد**

بدینوسیله به تأسی از فقره (۲) ماده چهل و سوم قانون تدارکات به اطلاع عموم رسانیده می شود، د افغانستان برشنا شرکت در نظر دارد تا قرارداد « پروژه تهیه و تدارک تجهیزات برقی و مواد ساختمانی،نصب و منتاژ تجهیزات، تست و کمیشنینگ،دیزاین و کنکشن و حق الامتیاز ترانسفارمر پروژه برق رسانی مدرسه مظهر العلوم نیازی واقع ساحه دیری ولایت خوست..) تحت شماره داوطلبی (برشنا-۰۱۰۰-اجناس-۱٤٤٦-داوطلبی باز ملی)" را « با شرکت کابل ترک لمتید دارنده جواز نمبر (۲۸۳۱۳) و با داشتن محل اصلی پروژه تایمنی مرکز کابل ، کابل به قیمت مجموعی مبلغ (۱,٦٦۰,۰۰۰) یک میلیون و شش صد و شصت هزار افغانی اعطا نماید.

اشخاص حقیقی و حکمی که هرگونه اعتراض در زمینه داشته باشند، می توانند اعتراض خویش را از تاریخ نشر این اعلان الی هفت روز تقویمی طور کتبی توأم با دلایل آن به ریاست تدارکات دافغانستان برشنا شرکت - دهمزنگ - کابل افغانستان وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارائه نمایند.این اطلاعیه به معنی عقد قرارداد نبوده و الی تکمیل میعاد فوق الذکر و طی مراحل قانونی بعدی، قرارداد منعقد نخواهد شد.

**اطلاعیه تصمیم اعطای قرارداد**

بدینوسیله به تأسی از فقره (۲) ماده چهل و سوم قانون تدارکات به اطلاع عموم رسانیده می شود، د افغانستان برشنا شرکت در نظر دارد تا قرارداد پروژه تهیه وتدارک ۳۷ قلم آهن آلات و تجهیزات مورد نیاز پروژه های برق رسانی شبکه توزیعی تحت کار ساختمانی امور برق تحت شماره داوطلبی برشنا -۰۹۵- اجناس-۱٤٤٥-داوطلبی باز ملی با شرکت تجارتی رفیع خالد دارنده جواز نمبر ۲۸٤٦۰ و با داشتن محل اصلی تجارتی} سرک ۳۰ متره چنداول ناحیه اول شهر کابل } را مبلغ ٤,۸۲۲,۷۲۰ چهار میلیون و هشتصدو بیست و دو هزار و هفتصدو بیست افغانی اعطا نماید.اشخاص حقیقی و حکمی که هرگونه اعتراض در زمینه داشته باشند، می توانند اعتراض خویش را از تاریخ نشر این اعلان الی هفت روز تقویمی طور کتبی توأم با دلایل آن به ریاست تهیه و تدارکات دافغانستان برشنا شرکت - دهمزنگ - کابل افغانستان وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارائه نمایند.

این اطلاعیه به معنی عقد قرارداد نبوده و الی تکمیل میعاد فوق الذکر و طی مراحل قانونی بعدی، قرارداد منعقد نخواهد شد.

**د ترون ورکړې د پریکړې خبرتیا!**

پدې توګه دتدارکاتو قانون د دري څلویښتمې مادې د دویمې فقرې پر بنسټ ټولو داوطلبانو ته خبر ورکول کیږي، چې د اندرا ګاندي د ماشومانو د درملنې انستیتوت په پام کې لري چې د دې روغتون اړوند د ۱٤۰٤ د مالي کال لپاره د یوه قلم روغتیایي اکسیجن تهیه او تدارک کول ترون چې شمیره یې عبارت له MOPH/NCB/IGICH/1404/G1 څخه ده د شرکت تولید اکسیجن حیات لمیټد، چې د کابل جلال اباد پکتیا کوټ سړک ناحیه ۹، مرکزکابل، افغانستان سیمه کې موقعیت لري او D-۲۹۸٦۰ جواز شمیرې لرونکی دی د {٤,۹۳٤,۸۰۰ افغانی} مجموعي قیمت سره ورکړي.

حقیقي او حکمي کسان چې په دې برخه کې هر ډول نیوکې (اعتراضونه) ولري، کولای شي خپله نیوکه ددې خبرتیا د خپریدو له نېټې څخه تر اوه تقویمي ورځو پورې په لیکلې بڼه د هغو له دلایلو سره یو ځای د اندرا ګاندي ماشومانو د درملني انستیتوت ته چې د کابل ښار وزیر محمد اکبر خان مینې لسم سړک موقعیت لري د تدارکاتو قانون پنځوسمې مادې د حکمونو سره سم وړاندې کړي.

دا خبرتیا د ترون په مانا نه ده او د پورته یاد شوې مودې او ورپسې قانوني پړاونو تر بشپړیدو پورې به ترون نه لاسلیک کیږي.

**د ناوړو دودونو ...**

شرعي دلیلونو او همداراز نورو ګڼو، ټولنیزو، شرعي او اقتصادي رامنځته کیدونکو زیانونو ته په کتو سره په لاندي ټکو باندي عمل کول ضروري دي:

(۱) د مړي د کور لـه لوري د بدرګې او مېلمستیا په څېر د رواج له مخې (په لومړی، دریمه، اوومه او څلوېښتمه ورځ) طعام برابرول، منع دي،( ) د مېلمستیا له شکل او د ورځې له تعیین پرته د نقد مال یا جنس صدقه کول چې لاندي شرطونه هم پکي رعایت شوي وي، مړي ته د ثواب سبب دي:

۱- صدقه به د ریاء، شهرت، سیالی، رواج او د خلکو د پېغور له امله نهوي.

۲- صدقه او خیرات به واجب او ضروري نهګڼل کیږي، که چا ونهکړ، هغه ته به په بده سترګه نهکتل کیږي.

۳- صدقه او خیرات یوازي بالغ او عاقل وارثان له خپل مال څخه په خپله خوښه کولای شي، د یتیم او غیرحاضر وارث مال به پکي نهمصرفیږي.

(۲) د یتیم له مال څخه په مړي پسې خیرات او صدقه کول که څه هم د یتیم په اجازه وي، منع دي، هغه څوک چې د یتیم په مال کې دا ډول تصرف وکړي، ضمان پرې لازم دی.

(۳) په ځینو سیمو کې د رواج له مخې خلک د مړي په لومړي اختر د مړي کور ته د تعزیت لپاره ورځي، دا هم ناسم رواج او منع دی.

(۴) په ځینو ځایونو کې رواج دی چې ښځه له وفات وروسته ضرور باید پلرنۍ (هدیرې) ته انتقال کړای شي او نه انتقال یې د ټول قوم لپاره پېغور ګڼل کیږي، چې دا کوم شرعي حیثیت نه لري، بلکي غوره دا ده چې د هغې د خاوند او اولادونو د خوښې په هدیره کې دفن کړای شي.

(۵) د ګاونډیانو او خپلوانو له لوري د مړي کور ته طعام برابرول مستحب عمل دی.

(۶) د تعزیت لپاره د شریعت مطهره له لوري د دفن له ورځې سره دري ورځې ټاکل شوي دي، البته غائبو اشخاصو ته له هغه وروسته هم د تعزیت کولو اجازه شته.

(۷) له یو ځل فاتحې کولو وروسته بیا د مړي کور ته د فاتحې په نیت ورتلل مکروه دي.

(۸) امارتي مسئولین دي د خپلو وفات شویو خپلوانو فاتحې نهاعلانوي، له اعلان پرته د خپلو اوسېدلو په ځای کي دي یوازي تر درېوو ورځو د فاتحې لپاره کښېناستلای شي.

(۹) حیله اسقاط د هغه مړي لپاره کیږي چي فقیر، یا مالدار وي، خو له وصیت پرته وفات شوی وي، یا یې وصیت هم کړی وي، خو د مال درېیمه برخه یې د واجبو فدیو لپاره کفایت نهکوي، که مړي شتمن وي او وصیت یې کړی وي پر ولي باندي یې واجب دی چې واجبي فدیې به یې د مال له درېیمې برخې څخه اداء کوي او یوازي په حیله اسقاط به بسنه نهکوي، البته د حیلې طریقه به د حنفي فقهې د هغو شرطونو مطابق وي چي یادونه یې شوې ده.

(۱۰) د شرعي حیلې شرطونه په لاندي ډول دي:

۱- د حیله اسقاط لپاره جمع شوی مال به د قبض لپاره یوازي مسکینانو ته ورکول کیږي، غني، ماشوم، لیوني، سفیه (بې عقله) او کافر ته به نهورکول کیږي.( )

۲- حیله اسقاط به د رواج او ځان ښودنې په خاطر نهکیږي؛ بلکي په دې نیت به کیږي چې د مړي غاړې پرې خلاصې شي.( )

۳- د مړي وارثان به د حیلې لپاره له داسې سړي څخه پیسې یا بل جنس نه قرض کوي چې هغه یې په خپله مالک نه وي او نه به له داسې شریک څخه قرض اخلي چې د بل شریک یې اجازه نه وي.( )

۴- د فدیو ګرځوونکی باید د مړي وارث یا د وارث وکیل وي او وکیل ته وویل شي چې د هرې دورې له ختمېدو وروسته د هرې بلې دورې لپاره فقیر ته د مال په ورکولو او بېرته اخیستلو کي بیا زما وکیل یې.

۵- د مړي قضاء شوي لمونځونه او روژې باید دقیقې حساب شي او که دقیق معلوم نه وي، نو په غالب ګمان دې حساب شي.( )

۶- فقیر ته د ورکړې پرمهال به یې دا نیت وي چې فقیر د دغو پیسو او شیانو مالک ګرځي.( )

۷- فقیر به په دې پوه وي او یا به یې څوک پوهوي چې په قبض کولو سره یې مالک ګرځي.( )

۸- کوم شخص چې فدیې ګرځوي او فقیر ته یې ورکوي باید لاسونه ترې لرې کړي او له هغه څخه په بېرته اخیستلو کي تلوار ونهکړي.( )

۹- د فدیو ګرځوونکی به فقیر ته داسي الفاظ وایي: دا د فلانکي چې د فلانکي زوی دی د لمونځ، روژې، قسم یا ...فدیې دي قبولې یې کړه، هغه به ووایې: قبولې مې کړې، زه یې مالک شوم، بیا به یې بېرته یاد شخص ته هبه کړي.( )

۱۰- حیله کوونکي به له دورې وروسته د فقیر له زړه بدوالي څخه ځان ساتي، که مال د حیله کوونکو وي، دومره مال به په صدقه کې ورکوي چې د فقیر زړه پرې خوشحاله شي.( )

۱۱- که د حج په میاشتو کې حیله کیږي، دا دې په نظر کې ونیسي چې دومره پیسې یو ځای فقیر ته ورنهکړي چې حج وربانډي فرض شي.

۱۲- که مړي وصیت نه وي کړی، ولي یې له مال څخه فقیر ته د وارثانو په رضا هغه مهال څه مال ورکولای شي چې په وارثانو کې یې غائب او صغیر نه وي او که یې وصیت کړی وي، نو بیا د میت د مال له درېیمې برخې څخه مال ورکولای شي، که څه هم په وارثانو کي غائب یا یتیم وي.( )

له حج او عمرې څخه د راستنېدو پر مهال له ځینو غیرضروري مصارفو او ناسمو رواجونو څخه ډډه کول

دریمه ماده:

په ځینو سیمو کې له حج او عمرې څخه د راستنېدو پرمهال د مبارکۍ او سترې مشۍ په مناسبت د سیمې خلکو او راغلو او رابلل شویو مېلمنو ته درنده مېلمستیا او خیرات برابرول او همداراز لوړ بیه تحفې خلکو ته ورکول ضروري رواج ګرځېدلی دی چې له یوه پلوه کوم شرعي حیثیت نهلري او له بله پلوه د زیات لګښت له امله د زیاتو خلکو له حج او عمرې څخه د محرومیت او یا د تأخیر سبب ګرځېدلی دی، له همدې امله باید ټول حجاج او معتمرین له یادو مصارفو او زیان اړوونکو رواجونو څخه ډډه وکړي.

د دې فرمان د حکمونو پوهاوی ورکول او د هغو عملي کول

څلورمه ماده:

(۱) د کورنیو چارو، سرحدونو، قومونو او قبایلو، اطلاعاتو او فرهنګ، د ارشاد، حج او اوقافو، پوهنې او لوړو زده کړو وزارتونه، رسنۍ او په ولایتونو او ولسوالیو کې د علماوو شوراګانې، فقهي مجالس، د مساجدو خطیبان او امامان، ولسي مخور او نفوذ لرونکي مشران دي په حکمت، مصلحت او تفاهم سره په خپله برخه کي د دې فرمان د حکمونو په اړه خلکو ته پوهاوی ورکړي او د پورتنیو احکامو د عملي کولو کوښښ دي وکړي.

(۲) د چارو اداري لوی ریاست، د امربالمعروف، نهي عن المنکر او د شکایتونو اورېدلو وزارت او د فرمانونو او حکمونو د تعقیب او نظارت لوی ریاست دي، په دوامداره توګه د دې مادې په (۱) فقره کي د یادو وزارتونو، ادارو او اشخاصو له اجراءاتو څخه څارنه وکړي.

انفاذ

پنځمه‌ماده:

دغه فرمان د توشیح له نېټې څخه نافذ او په رسمي جریده کي دې خپور شي.

والسلام علیکم ورحمة الله وبرکاته!

امیرالمؤمنین شیخ القرآن والحدیث

مولوي هبة اللهاخندزاده

**تقلای مردم غزه ...**

ان شاءالله کفر و الحاد رو به زوال است. ایمان قوی و اراده راسخ همیشه کفر و الحاد را به زانو در آورده است. مثال های زنده اش در کشور عزیز ما افغانستان است که دو ابر قدرت در این خطه شکست خوردند و با شرمساری فرار را بر قرار ترجیح دادند و رفتند .

وضعیت رقتبار فلسطین دیگر برای هیچ مسلمانی در جهان قابل تحمل و پذیرش نیست. خداوند مهربان است و شاید روزی برسد که شاهد وگواه شکست اسرائیل با حامی قلدرش آمریکایی که داد از عدالت اجتماعی و حقوق بشری می زند باشیم.

**استقبال مردم از فرمان ...**

کابل در این مورد می گوید: ((من منحیث یک شهروند خوشحال هستم بابت فرمان جدید که صادر شده است، بسیاری از جوانان وضعیت اقتصادی خوبی ندارند و به خاطر مصرف گزاف، رواج های ناپسند و مراسمی که بیشتر تشریفاتی است، ازدواج کرده نمی توانند.)) عتیق الله یکتن از باشنده گان ولایت میدان وردگ می گوید که مصارف بی مورد در عروسی ها، فاتحه و همچنان اخذ طویانه هنگفت از طرف فامیل ها زمینه ازدواج را محدود و سختتر ساخته است که بسیاری جوانان به خاطر تامین این مصارف مجبور می شوند تا برای کار کردن به کشورهای دیگر سفر کنند: ((من از این فرمان جدید امارت اسلامی خوشحال هستم که از مصارف بی جا و اخذ طویانه های هنگفت جلوگیری می شود و همچنان مصارف بی جا که در خیرات گرفته می شود. به خاطر طویانه هنگفت جوانان مجبور می شوند وطن خود را ترک کنند.))گفتنی است که رسم های ناپسند، رقابتهای خانوادگی در برگزاری مراسم عروسی، شیرینی خوری و خیرات های پرهزینه و مصارف بسیار گزاف پس از برگشت از سفر حج و عمره، از جمله رسومات ناپسند در افغانستان هستند که باعث مشکلات اجتماعی در کشور شده است.

**تېر کال په سیاسي ...**

مالیزیا، ترکیې، پاکستان، ایران، ازبیکستان، ترکمنستان او قزاقستان هېوادونو ته ډیپلوماتان ولېږل. په دې کال کې د اسلامي امارت درې سفیران هم د چین، متحدو عربي اماراتو او ازبیکستان د مشرانو او جمهور رئیسانو له لوري ومنل شول. د اسلامي امارت د ویاند د مرستیال په وینا: د سعودي سفارت په تیر ۱۴۰۳ کال کې په کابل کې پرانیستل شو او قزاقستان، هند او ناروې هم خپل ډیپلوماتان کابل ته را استولي دي. نوموړي همدارنګه زیاتوي: په دې کال کې د اسلامي امارت چارواکو د نړۍ له هېوادونو سره د اړیکو د پراخولو په موخه ۵۱ بهرني سفرونه کړي او له هېوادونو او نړیوالو سازمانونو سره یې ۲۵ ګډې ناستې کړې دي. ((په دې کال کې له نړۍ سره د اړیکو د زیاتولو په موخه د اسلامي امارت چارواکو ۵۱ رسمي سفرونه کړي او د قطر، ترکیې، پاکستان او ایران په کوربه توب یې په غونډو کې ګډون کړی. دا ټول د دې ښکارندویي کوي، چې اسلامي امارت په دې کال کې په سیاسي او ډیپلوماتیکو برخو کې ښه پرمختګ کړی دی.)) حمدالله فطرت همدارنګه د اقتصادي لاسته راوړنو په اړه وایي: افغانستان په ۱۴۰۳ کال کې لس میلیارده ډالره سوداګري درلوده، چې دوه میلیارده ډالره یې صادرات وو.

نوموړی د ځینو پروژو په اړه وایي: په دې کال کې په افغانستان کې د ټاپي پروژې عملي کار پیل شوی او د کاسا ۱۰۰۰، افغان ـ ټرانس او اورګاډي پټلۍ پروژو کې چې افغانستان له ازبیکستان، ایران او پاکستان سره نښلوي، ډېر پرمختګ شوی دی. د ده په وینا: د غوریانو د وسپنې په کان کې د شپږ میلیاردو ډالرو پانګونه، د قشقري د تېلو استخراج او د طوي میدان ګاز په ۱۴۰۳ کال کې د اسلامي امارت له نورو اقتصادي لاسته راوړنو څخه دي.

**د اسلامي امارت ...**

ته ځواب ویونکی واوسي. حنفي ډاډ ورکړ، چې د اسلامي امارت مشرتابه د پوهنې وزارت د ټولو اړتیاوو پوره کولو ته ژمن دي، ترڅو جنګ ځپلي افغانستان یو متعالي او غوره معارف ولري. ده همدارنګه له ښوونکو څخه هم غوښتنه وکړه، چې په اسلامي او ملي روحیه د سمبال نسل د روزلو په موخه لا ډېرې هڅې وکړي او زده کوونکي د بېځایه وخت تېرولو پرځای د خپلو درسونو ویلو ته وهڅوي. په ورته وخت کې د پوهنې وزارت سرپرست مولوي حبیب الله اغا وویل، چې د اسلامي نظام پر ضد له زهرجنو تبلیغاتو څخه یوه خبره دا هم ده، چې ګواکې اسلامي امارت د عصري زده کړو مخالف دي، خو په وینا یې دا خبره ناسمه او له حقیقت څخه لرې ده. نوموړي څرګنده کړه، چې عصري او دیني علوم دواړه د نن ورځې مهمه اړتیا ده. موږ دواړو ته ژمن یو او له هېوادوالو څخه هم غوښتنه کوو، چې د رسنیو په منفي تبلیغاتو ونه غولېږي.د پوهنې وزارت سرپرست په هېواد کې د پوهنې دکیفیت لوړولو په موخه د ګړندیو هڅو خبره هم وکړه او ویې ویل چې په همدې موخه د غوره نصاب او مناسب ښوونیز چاپېریال د چمتو کولو لپاره کار روان دی. د پوهنې وزارت د دفتر رئیس مولوي شهاب الدین ثاقب په یاده غونډه کې وویل چې د هېواد هر ګوټ ته د ښوونیزو چوپړتیاوو رسول د پوهنې وزارت له لومړیتوبونو څخه دي او په دې برخه کې د پام وړ کار هم شوی دی. ده زیاته کړه، چې په ښوونځیو کې د پوهنې د کیفیت لوړولو په موخه تېر کال ګڼ شمېر ښوونکي ارزول شوي او د هغوی د ظرفیت لوړولو په موخه ورته روزنیز پروګرامونه دایر شوي دي. د پوهنې وزارت د نوي ښوونیز کال په مناسبت په خپره کړې اعلامیه کې لیکلي، چې تېر کال په هېواد کې نږدې ۴۴ زره مدرسو او ښوونځیو فعالیت درلود او له ۱۰میلیونو ډېرو طالب العلمانو او زده کوونکو ته په کې د څه باندې دوه نیم سوه زره استادانو او ښوونکو له لوري تدریس کېده. په اعلامیه کې همدارنګه راغلي، چې تېر کال د هېواد په ټولو ولایتونو کې زر کسیزې جهادي مدرسې فعالې وې او د هېواد په ټولو ولسوالیو کې ۵۰ کسیزې لیلیه مدرسې رامنځته شوې دي. هېره دې نه وي، چې د چارو اداري لوي رئیس شیخ نورالحق انور په دغې غونډه کې وویل چې که څه هم دښمن په ټول توان سره د سرې جګړې پر مټ د اسلامي امارت د بدنامولو هڅه کوي، خو هېواد ورځ تربلې د پرمختګ په حال کې دی او دلته د سراسري امن پر ټینګښت، نشه یي توکو سره پر اغېزناکې مبارزې، د اقتصادي پروژو پر تطبیق، د بې کیفیته توکو او درملو په مخنیوي او ګڼو نورو لاسته راوړنو سترګې نه شي پټېدلې.

**اسلامي امارت د متوازن ...**

دا مهمه ده، چې افغانستان او امریکا پر دې وتوانېږي چې مسئلې د خبرو له لارې حل کړي. د بهرنیو چارو وزارت سرپرست همدارنګه ویلي: پکار ده چې دواړه هېوادونه د شل کلنې جګړې له اغېزو راووځي او یو بل سره سیاسي او اقتصادي مثبتې اړیکې ولري. په ورته وخت کې د بندیانو په چارو کې د امریکا د ولسمشر ځانګړي استازي اډم بوایلر په دغې کتنه کې د افغانستان او امریکا ترمنځ د بندیانو په برخه کې پرمختګ د باورجوړونې پر لور ښه ګام بللی دی. ده په افغانستان کې د نشه یي توکو پرخلاف او د امنیت د ټینګښت پر لور اقدامات د ستاینې وړ بللي دي. بوایلر د دواړو لوریو ترمنځ د خبرو پر دوام ټینګار کړی او د خبرو له لارې یې د اړیکو ټینګښت مهم بللی دی. نوموړي څرګنده کړې، چې دواړه هېوادونه تاریخي اړیکې لري، چې ځینو پړاوونو کې ستونزې هم وې، خو اوس مهمه دا ده، چې راتلونکي په پام کې ونیول شي.

**په تېر ۱۴۰۳کال ...**

ښه شوی او ۲،۷ سلنه وده یې، درلوده.ده وویل: ((د افغانستان اقتصادي وضعیت په تېرکال کې د تېر کال په پرتله ښه شوی، چې ۲.۷ سلنه وده ښیي، په داسې حال کې چې د انفلاسیون کچه -۷.۷ سلنه اټکل شوی؛ په ۱۴۰۳ کال کې، شاوخوا ۳۷۰ کورنۍ پروژې د اسلامي امارت له پراختیایي بودیجې او کورنیو عوایدو څخه تمویل شوي او د اسلامي امارت د فرعي پرمختیایي پروژو ټولټال شمېر، چې د ولایتونو له مخې ویشل شوي، ۸۷۳ پراختیایي پروژې وې چې په مختلفو سکتورونو کې دي؛ لکه د اوبو مدیریت، کرنه، روغتیا، زیربنا، ښوونه او ټولنیز امنیت.)) د اقتصاد وزارت ویاند زیاتوي، چې دغه وزارت په تېر ۱۴۰۳ کال کې د بشري مرستو په نوم د نړیوالو بنسټونو او موسسو په مرسته ۶۲۱ پرمختیایي پروژې بشپړې کړي او د ۱۳۱۸ نورو پروژو کار هم چې له تېرو کلونو نیمګړې پاتې وې بشپړې کړې دي.د افغانستان بانک ویاند حسیب‌الله نوري رسنیو ته ویلي: ((د افغانستان بانک په خپلو دوامدارو هڅو سره توانیدلی، چې د بانکي خدمتونو ثبات وساتي او د محدودیتونو د حل لپاره تخنیکي حل لارې ولټوي؛ د افغانستان بانک مشرتابه د مختلفو هېوادونو له ادارو او بانکي چارواکو سره لیدلي او مختلفې غونډې یې کړي، چې د نړیوالو معیارونو په پلي کولو او د بانکي سکتور د ننګونو په حل کې یې ښې پایلې ترلاسه کړې دي. د بانکدارۍ له محدودیتونو سره سره، موږ توانیدلي یو ، چې د کورنیو او سیمهییزو همکاریو له لارې خپلو اهدافو ته دوام ورکړو.))

**د ټولګټو چارو وزارت ...**

شبکه پراخه کړي، ترڅو د افغانستان د ریل پټلۍ شبکې له لارې سیمه ییز هېوادونه په ځانګړې ډول ترکمنستان، ازبیکستان، ایران او پاکستان سره ونښلوي. د یاد کنفرانس مهمې اجنډاوې سیمه ییزه اقتصادي پیاوړتیا، د ریل پټلۍ شبکې پراختیا، برښنا، د ګازو انتقال او د اقتصادي ثبات په تړاو هراړخیز مذاکرات ښودل شوي دي. د یادونې وړ ده، چې په دغه کنفرانس کې د نړۍ د ۱۰۰ بېلابېلو هیوادونو استازو ګډون درلود، چې د افغانستان له لوري د برښنا شرکت، د کانونو او پټرولیم وزارت او د ټولګټو وزارت استازو ګډون کړی و.

**د نظام د پیاوړتیا ...**

امارت د اسلامي نظام په توګه ولس ته د خدمت مسئولیت لري. نوموړي همدارنګه له اسلامي امارت سره د اهل تشیع عالمانو او قومي مشرانو له همکاریو په ستاینې سره، د نظام د قوت او یووالي په برخه کې د هغوی د هڅو ملاتړ کړي. د کډوالو او را ستنېدونکو چارو وزارت سرپرست په دغې کتنه کې د اهل تشیع مشرانو ته د هر راز همکارۍ ډاډ ورکړ.

**فراه کې لسګونه پراختیایي ...**

طبیعي پېښو، کډوالو، کار او ټولنیزو چارو او اړوندو نورو برخو کې ۶۶ پروژې پلې شوي، چې له لارې یې څه باندې ۳۰۰۰ کسانو ته د کار زمینه برابره شوې ده. مولوي جلالي د غونډې په ترڅ کې، فراه یو جګړهځپلي ولایت وباله او له غیر دولتي موسسو یې غوښتنه وکړه، چې د مرکز تر څنګ، ولسوالیو او لرې پرتو سیمو ته هم زیاتې مرستې او پاملرنه وکړي. ورته مهال د فراه والي مولوي غوثالدین رهبر د راتلونکې مالي کال لپاره د پرمختیایي موخو پر اهمیت ټینګار وکړ او له مسئولینو یې وغوښتل، چې خپلې اداري چارې په روڼتیا او دقت ترسره کړي. نوموړي، د مرستندویو موسسو استازو ته سپارښتنه وکړه، چې خپل فعالیتونه د اسلامي امارت د اصولو او مقرراتو مطابق، پرته له ځنډ او خنډ څخه پر مخ بوزي.

**بامیانو کې تېرکال ...**

د یادونې وړ ده، چې د اسلامي امارت په بیاواکمنېدو سره د هېواد په بېلابېلو ولایتونو کې د قومونو ترمنځ ورته اختلافاتو ته د پای ټکي ایښودل شوي دي.

**ایران ۲۱۱ تنه افغان بندیان ...**

تېره کړي. د مراسمو په پای کې د نیمروز والي اسلامي امارت ته د افغان بندیانو د سپارلو پروسې د ښه مدیریت او دوی ته د خوړو، روغتیایي خدمتونو او نورو آسانتیاوو د برابرېدو ډاډ ورکړ.

**در ولسوالی های محروم ...**

همهجانبه اداره محلی برای تطبیق بهتر فرمان عالیقدر امیرالمؤمنین (حفظهالله) و تسهیل امور کاری این شفاخانهها اطمینان داد و تأسیس مراکز صحی در ولسوالیهای محروم هرات را یک نیاز اساسی برای مردم این مناطق دانست.

**د قطر د تاریخي آثارو ...**

آثار له نړیوالو فرهنګي حلقو سره شریک شي چې د افغانستان د تاریخي او فرهنګي ارزښتونو په برخه کې نړیواله پاملرنه راجلب کړي.

ده زیاته کړې چې د قطر د تاریخي آثارو په نړیوال ننداړتون کې د افغانستان د تاریخي آثارو شتون به د ګرځندوي صنعت ته وده ورکړي او د نړۍ له ګوټ ګوټ څخه به خلک د افغانستان فرهنګ ته جذب کړي.

**اسلامي امارت یو ...**

په ښه ډول حل کولای شي. په خبرپاڼه کې همدارنګه د عربي متحدو اماراتو او قطر له دولتونو څخه مننه شوې، چې د اسلامي امارت او د امریکا د متحدو ایالتونو ترمنځ یې د دې پرمختګ د رامنځ ته کولو په برخه کې د ښه اسانچاري او د دې قضیې په اوارې کې مهم او اغېزناک رول لوبولی دی.

# Hewad Daily

شنبه د رمضان المبارک ۲۲مه ۱٤٤٦ق کال د ۱۴۰۴ ل کال د وري ۲ یمه د 2025 م کال د مارچ۲۲ مه



د ورځپاڼو رئیس : انجنیر عُزیر« بریالی»
موبایل : ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
آمر او مسئول مدیر : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷٤۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱

پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ کابل - افغانستان
داړیکو شمېره: س ۰۲۰ - ۲۵۲۶۳۴۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیوادورځپاڼې انټرنېټي پاڼې دلاندې وېب سایټ له لارې هم کتلی شئ
ویب سایت: www.hewaddaily.com
دشکایاتو اوتوزیع څانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶-۰۷۳۶۰۶۰۷۳


## د بهرنیو چارو وزیر: افغانستان له خپلو ګاونډیو هیوادونو سره هېڅ راز ستونزې نه لري



د بهرنیو چارو وزیر مولوي امیرخان متقي کابل کې مېشتو سفیرانو او د ډیپلوماتیکو ماموریتونو او نړیوالو سازمانونو استازو ته د روژه ماتي ضیافت پر مهال وویل: افغانستان خپلو ګاونډیو هېوادونو سره هېڅ راز ستونزې نه لري. مولوي امیرخان متقي هیله وښووده، چې پاکستان سره هم د نورو ګاونډیو هېوادونو په څېر باید ستونزه حل شي. ښاغلي متقي ټینګار وکړ، دواړه هېوادونه باید خپلمنځي ستونزې د خبرو له لارې حل کړي او له داسې اقداماتو ډډه وکړي، چې زیان یې ولسونو ته رسېږي. نوموړي د سیمې او نړۍ هېوادونو سره د اسلامي امارت اړیکو ته په اشارې وویل، د هرې ورځې په تېرېدو هېوادونو سره تعامل زیاتېږي. د بهرنیو چارو وزیر دغه راز له ګاونډیو هېوادونو وغوښتل چې دکډوالو ایستلو پروسه په تدریج سره ترسره کړي، څو په کور دننه یې په ښه ډول مدیریت وشي. متقي یو ځل بیا ګاونډیو، د سیمې او نړۍ هېوادونو ته ډاډ ورکړ، چې د افغانستان خاوره به د چا پر ضد نه کارول کیږي او چاته به اجازه ورنه کړي چې د افغانستان له خاورې نورو ته ګواښ پېښ کړي.

## د قطر د تاریخي آثارو ننداړتون کې د افغانستان د تاریخي آثارو پر شتون خبرې وشوې

د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د هنر او فرهنګ معین مولوي عتیق الله عزیزي، د قطر د موزیمونو له عمومي رئیس محمد الرمیحي او د اسلامي موزیمونو له مشرې شیخه النصر سره په قطر کې د تاریخي آثارو جوړېدونکي نړیوال ننداړتون په اړه آنلاین ناسته ترسره کړه.
په دې ناسته کې د قطر د موزیمونو رئیس د تاریخي آثارو د جوړېدونکي ننداړتون په اړه معلومات ورکړې او غوښتنه یې کړې چې د تاریخي آثارو یوه ټولګه د دغه ننداړتون لپاره ورکړي.
محمد الرمیحي ویلي دي: «موږ به د افغانستان تاریخي آثار له نړیوالو قوانینو او معیارونو سره سم قطر ته انتقال کړو او د آثارو د ساتنې، امنیت او ترانسپورټ لپاره به دقیق تدابیر ونیول شي.»
دغه راز د هنر او فرهنګ معین، د قطر استازو ته د آثارو د لېږد په اړه د همکارۍ ډاډ ورکړ او ویلي یې دي چې دا پروژه د افغانستان د فرهنګي میراثونو



په ساتنه او نړۍ ته د ارزښتونو په پېژندنه کې مرسته کوي او د یاد ننداړتون له لارې به د افغانستان **۳مخ**

## در ولسوالی‌های محروم هرات چندین شفاخانه ساخته می‌شود



چندین شفاخانه ۵۰ بستر در بخش‌های مختلف، به زودی در ولسوالی‌های محروم هرات ساخته خواهد شد. داکتر محمد حسن غیاثی، معین پلان و پالیسی وزارت صحت عامه، در دیدار با شیخ مولانا اسلام‌جار، والی هرات، پیرامون فرمان عالیقدر امیرالمؤمنین (حفظه‌الله ) مبنی بر تأسیس ۳۱۸ شفاخانه در ولسوالی‌های محروم کشور و روند سهمیه‌بندی این پروژه صحبت کرد.وی افزود که از این تعداد، چندین شفاخانه ۵۰ بستر در بخش‌های نسایی و ولادی، اطفال،داخله و جراحی در ولسوالی‌های دوردست و محروم هرات ساخته خواهد شد.والی هرات، در این دیدار از همکاری **۳مخ**

## اسلامي امارت یو امریکایي اسیر له بند څخه آزاد کړ

د افغانستان د بهرنیو چارو وزارت له بند څخه د یوه امریکایي اسیر د آزادولو خبر ورکړی دی.یاد وزارت د یوې خبرپاڼې په خپرولو سره ویلي چې اسلامي امارت د یوه بشردوستانه اقدام په توګه یو امریکایي اسیر جورج ګلیزمن له بند څخه ازاد کړ.په خبرپاڼه کې زیاته شوې، چې د افغانستان اسلامي امارت د تل په څېر یو ځل بیا په ډاګه کوي، چې د خبرو، تفاهم او ډیپلوماسۍ له لارې د ټولو مسایلو د حل لپاره لارې چارې پیدا کېدلای شي او د یاد امریکایي وګړي د خوشي کولو ګام هم د ښه نیت له مخې پورته شو، چې دا ښیي ټولو لوریو سره، په ځانګړې توګه د امریکا متحدو ایالاتو سره، د متقابل درناوي او ګټو پر بنسټ واقعي تعامل ته چمتو دي .سرچینې همدارنګه ویلي: داچې افغانستان کې جګړه پای ته رسېدلې، د داعش په څېر فتنه ګرې ډلې ځپل شوي او له افغانستان څخه هیچا ته خطر نه دي متوجه، دا ښیي ،چې افغانستان د سیمې او نړۍ په ثبات کې مثبت رول لوبولای شي او هم له نړیوالو سره خپل مسایل **۳مخ**

## پروان کې د ۳۳۱ پروژو چارې بشپړې شوې




د پروان د کلیو د بیا رغونې او پراختیا ریاست مسئولین وایي، چې د یاد ولایت په مرکز او ۹ ولسوالیو کې د ۵۵۷ میلیونو افغانیو په لګښت د ۳۳۱ بېلا بېلو پروژو چارې بشپړې او ګټې اخیستنې ته سپارل شوي دي. د یاد ولایت د کلیو د بیارغونې او پراختیا رئیس ملا عبدالصمد صادق باختراطلاعاتي اژانس ته ویلي، چې د اسلامي امارت له بیا واکمنېدو راهیسې د دې ریاست ترچتر لاندې او د بېلا بېلو موسسو په مالي ملاتړ د ۵۵۷ میلیونو افغانیو په لګښت د یاد ولایت په مرکز او نهو ولسوالیو کې ۳۳۱ بېلابېلې پروژې پلې او ګټې اخیستنې ته سپارل شوې دي. نوموړي زیاته کړه، چې په یادو پروژو کې د محافظتي دېوالونو او کلیوالي سړکونو جوړول، د کانالونو پاکول او د بیا رغونې او د اوبو رسونې شبکې شاملې وې چې په پلي کېدو کې یې زرګونو کسانو ته د کار زمینه برابره شوې وه.سیمه ییز اوسېدونکي د یادو پروژو له پلي کېدو خوښ دي او له مسئولینو د ورته ټولګټو پروژو غوښتنه کوي.

## د لوګر د کرنې ریاست څه باندې ۲۰ میلیونه افغانۍ عواید راټول کړي

د لوګر ولایت د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ ریاست مسئولین وایي، چې یاد ریاست د تېر ۱۴۰۳ کال په ۱۱ میاشتو کې نږدې ۲۰ میلیونه افغانۍ عواید راټول کړي دي.د یاد ولایت د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ ریاست د عوایدو د چارو د تنظیم آمر قاري عبدالبصیر




شاهد باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې دغه ریاست د تیر ۱۴۰۳ کال په ۱۱ میاشتو کې ۲۰.۴ میلیونه افغانۍ عواید راټول او د دولت خزانې ته یې سپارلي دي.د نوموړي په وینا: دغه عواید د ځمکو د اجارې، عشر او زکات او نورو بېلابېلو برخو څخه راټول شوي دي. د یادونې وړ ده ، چې د لوګر افغان پست امارتي شرکت هم د تیر ۱۴۰۳ کال په لړ کې نږدې ۱۱میلیونه افغانۍ عواید راټول کړي دي.

## بغلان کې تېر کال د مؤسسو شمېر او فعالیت زیات و

د بغلان ولایت د اقتصاد ریاست مسئولین وايي، چې په دې ولایت کې د ۱۴۰۲ کال په پرتله ۱۴۰۳ کال کې د مؤسسو شمېر زیات شوي و. د یاد ولایت د اقتصاد رئیس قاري محمدهارون شاکر وایي چې په ۱۴۰۲ کال کې په دې ولایت کې ۸۱ مؤسسو چې ۵۸ یې کورنۍ او ۲۳ یې بهرنۍ مؤسسې وې په بېلابېلو برخو کې فعالیت کاوه، خو په تیر ۱۴۰۳ کال کې چې په دې ولایت کې کاري شرایط مؤسسو ته په اغېزناک ډول برابر شوي وو، ورسره د نادولتي مؤسساتو شمېر ۱۱۲ ته لوړ شوي دي چې په دې کې ۸۱ مؤسسې کورنۍ او ۳۱ یې بهرنۍ مؤسسې دي .شاکر زیاته کړه: (( دغه شمېر ښیي چې د ۱۴۰۲ کال په پرتله په ۱۴۰۳ کال کې په دې ولایت کې ۳۱ نورو مؤسسو هم فعالیتونه پیل کړي او د دې ولایت اوسېدونکو ته یې په بېلابېلو برخو کې ګټور او مهم خدمتونه وړاندې کړي دي)) د بغلان اوسېدونکي وایي، چې نورې کورنۍ او بهرنۍ مؤسسې هم باید د لاګټورو خدمتونو د وړاندې کولو په موخه په یاد ولایت کې خپل فعالیتونه پیل کړي.

## بهرني لنډ خبرونه

## شهادت۱۸۳کودک فلسطینی در حملات رژیم صهیونیستی برغزه



درپی حملات جدید رژیم صهیونیستی ۱۸۳ کوک فلسطینی به شهادت رسیده است. شبکه خبری الجزیره گزارش داده است که از زمان آغاز دوباره حملات اسرائیل برغزه در حدود ۴۳۶ فلسطینی، از جمله ۱۸۳ کودک به شهادت رسیده است. طاهر النونو، یکتن از مقامات حماس، اعلام کرد که این گروه، با وجود حملات سنگین اسرائیل بر غزه درهای گفتگو را بسته نمی‌داند؛ اما تاکید کرد که با وجود توافقات انجام شده، نیازی به توافقات جدید نیست. از سوی دیگر، صدراعظم اسرائیل، بر تشدید حملات تاکید کرده و رسانه ها گزارش داده اند که نیروهای اسرائیلی حملات زمینی خود را نیز از سر گرفته اند. این درحالیست که پس از پایان دور نخست توافق آتش بس، شرایط جدید اسرائیل، گفتگوها را برای دور دوم آتش بس به چالش مواجه کرده است.

## زیلنسکي: له ټرمپ سره مې خبرې ګټورې وې

د اوکراین ولسمشر ولادیمیر زیلنسکي ویلي، چې له ډونالډ ټرمپ سره یې واضح او ګټورې خبرې کړې دي. د معلوماتو له مخې، دواړو ولسمشرانو ټیلفوني خبرې کړې دي. د زیلنسکي له څرګندونو وړاندې ولسمشر ټرمپ په خپله خواله رسنۍ(( سوشل تروت)) کې لیکلي و، چې دې خبرو نږدې یو ساعت دوام وکړ او د خبرو لویه برخه پر دې راڅرخېده، چې د تېرې سه شنبه په ورځ یې د روسیې له ولسمشر ولادیمیر پوتین سره د اوکراین د جګړې په تړاو خبرې کړې وې. ټاکل شوې ده چې د اوکراین د جګړې په تړاو سبا ( یکشنبه) د امریکا او روسیې د پلاویو ترمنځ د



سعودي عربستان په جدې ښار کې بیا مذاکرات پیل شي. دا په داسې حال کې ده، چې دواړه لوري تېره اوونۍ هم د جدې په ښار کې د اوکراین پر مسالې غږېدلي وو.

## کاناډا په چین کې د دغه هیواد د وګړو اعدام غندلی

د کاناډا د بهرنیو چارو وزارت ویلي: چین د روان کال په لومړیو کې څلور کاناډایي وګړي د نشه‌يي توکو د قاچاق په جرم اعدام کړي او د چین له لوري یې د اعدام جزا غندلې ده. د کاناډا د بهرنیو چارو وزیرې «میلاني جولي» وړمه ورځ د کاناډایي اتباعو اعدام په کلکه وغانده. دې ویلي: اوټاوا به د همداراز نورو مجرمو کاناډایي وګړو د جزا په برخه کې له بیجینګه د نرمښت غوښتنه وکړي. د کاناډا چارواکي وایي، چې څلور کاناډایي اتباع یې د مخدرو توکو د قاچاق په تور په چین کې اعدام کړي دي. اومیلاني زیاته کړه، چې اعدام شویو کسانو دوه ګونې تابعیتونه درلودل. په کاناډا کې د چین سفارت د اعدام دفاع کړې او یادونه یې کړې چې بیجینګ په نشه‌يي توکو پورې د اړوندو جرمونو لپاره سختې جزاګانې ورکوي. د کاناډا او چین ترمنځ اړیکې له ۲۰۱۸ ز کال راهیسې د «هواوي» د مالي چارو د مشر له نیول کېدو وروسته ترینګلې دي.

